





عبدالباري جهاني ۲۰۱۷/۰۳/۲۳

# اخوند درویزه او ارشادالطالبین

## لومړی برخه

درویزه چه بیان کړی خپل کتاب دی
نوم یي مخزن الاسرار ایښی جناب دی
هر بیان یي ناموزون مجهول بې رنګه
خالي پاتو له دانشه له فرهنګه
که یوه مصرع په شل بله په سل ده
نامربوطه ناموزونه په ویل ده
قافیه یي لام و دال سره وهلي
په ردیف کښې یي نون واو سره پیيلي
ما وی دین د محمد ص دی ما منلی
بې قرآنه بل کتاب دی چا منلی
درویزه نه مجتهد دی نه امام دی
دی هم خام تاسي هم خام مخزن هم خام دی
ملایان د سوات همه زکوات خواره دي
په دانش په دین په علم خبرنه دي ( سوات نامه د خوشحال خان ختک)

دا چې خوشحال خان د اخوند درویزه د مخزن د کلام پر طرز، په تېره بیا قافیه او ردیف باندي، اعتراض کوي، بشپړ حق په جانب دی؛ خو دا چې د هغه کتاب مخزن الاسرار بولي سړی نه پوهیږي. ځکه چې پخپله اخوند درویزه د خپل کتاب په پای کي وایي:

درویزه چه څه بیان کا واړه دین د پاک بني بیانه وینه
پښتانه په بله ژبه نه پوهیږي ځکه دی یي په پښتو ورښیينه
ته آګاه په دې کتاب شه اې مومنه له اخلاصه
اکثر دین مي جمعه کړی دی په دا کښې بله غاړه دې شي خلاصه
لکه مې فهم باندې وکړ اې طالبه په آخر چه مې تمام کړ
دی په مثل خزینه وو ځکه ما یې نامه مخزن الاسلام کړ ( مخزن الاسلام ص ۱۳۶)

د خوشحال خان ختک توریالی لمسی افضل خان ختک، چې د خپل نیکه په څېر د توري او قلم خاوند و، د خوشحال خان دا قضاوت، د اخوند درویزه په حق کي تېری بولي او وایي چې اخوند درویزه، په هغه وخت کي چې علم ډېر کم وو، پښتنو ته ډېره ښه رهنمایي وکړه او په پښتو او فارسي یې کتابونه ورته ولیکل ( تاریخ مرصع ص ۳۴۳)
د کال ۱۳۵۳ د مرغومي پر پنځه لسمه په کابل کې، د یوې هفتې لپاره، د پیر روښان د مړیني د څلور سوم تلین په مناسبت، یو بین المللي سیمینار جوړ سوی وو، چې د ګاونډیو هیوادونو او شوروي اتحاد پوهانو برخه پکښې اخیستي وه. په دې سیمینار کې اخوند درویزه ته، چې د پیر روښان تر ټولو سخت دښمن او د مغولو د دربارنوکر بلل کېدی ډېري سختې خبرې وسوې. حتی د ایران د سفارت کلتوري اتشه خدیو جم، چې په دې سیمینار کې یې د ناظر مېلمه په حیث برخه درلوده، په هغه سفر کې چې موږ د پیر روښان د وروستې جګړې د میدان، تور راغه، د لیدلو لپاره ننګرهار ته ولاړو، یوه اوږده قصیده وویله او د پیر روښان د ستایلو تر څنګ یې اخوند درویزه هم بې غندلو پرې نه ښود.

یاران رهي شدند ز کابل به ننګرهار

با یاد بایزید روشان پیر بزگوار
آزاده اي که مذهب آزادگي گزید
با خصم خویش پنجه درافگند شېر وار
دیدند خشک و خالي دامان دشت و کوه
برباد رفته انهمه مردان نامدار
پس چشم دل گشوده شد و گوشها شنود
رمزي که گفت مردی زابنای ان دیار
ای عالمان به وادي تیرا خوش امدید
نک بشنوید یک سخن از راز روزگار
هستند کوه و دشت ثنا خوان بایزید
اما نثار درویزه نفرین پایدار ( د روښان یاد ۳۵۸)

که څه هم چې د روښانیانو په ادبیاتو کي د اخوند درویزه نوم چا نه دی اخیستی، خو اخوند درویزه له پیر روښان او د هغه له پیروانو سره خپله دښمني نه پټوي. د مخزن الاسلام او تذکرته الابرار والاشرار د کتابونو ډېري برخي یي د پیر روښان او روښانیانو پر ضد لیکلي او د پیر روښان، چي دی یي پیر تاریک بولي، د پیروانو وژل روا او نېک کار بولي.

اوس زمونږ په زمانه کي لکه دا خوک تاریک پیدا شه
دا خبري یي انشاء کړي ولي ډېر افغانان یي ویاسته له دینه
د دوی خون دی مباح شوی نبي هسي دي ویلي
چه په مرگ یي صرفه مه کانړی امته هر چه زما دین بدلوینه
درویزه بیان پښتو کړه له کتابه له حدیثه
بل هر چه مومنان دي په سینه او په تېتر دي یي کېږدینه ( مخزن ص ۶۰)

خو کله چي د پیر روښان زامن د یوسفزیو سره په جگړه کي ووژل سول او یو سفزیو د هغوی د کورنیو غړي بندیان کړل او جلال الدین اکبر له یوسفزیو څخه د روښان پیر د کورنی د غړو د خوشي کېدلو غوښتنه وکړه او د پیر روښان کشر زوی جلا الدین یي پایتخت اگرې ته ورسره بوت نو درویزه مغول پاچا ته په غوسه دی او هغه د اسلام له دینه بېخبره بولي:

دا څلور ورونه دالته د دوزخ په لار کي مړه شو
جلال دین یي بندي ونیو دریغه دی هم مړوی دا به ښه شو
د نبي د دین رخنه وه لا څه پاته چه دی مړ دالته نه شه
هم عالمان به شو بي غمه د فقیر د مسافرو کاروانیو زړه به ښه شه
لا رخنه وه د د ین پاتي چه بادشاه زمونږ اکبر وو
دی د نفس په لوري تللی او له دینه بي خبر وو
دي اکبر بادشاه بهیر کړ یوسفزي لره خطونه
چه و ما یي را کانړی د تاریک بندي کورونه (مخزن ص ص ۱۳۴- ۱۳۵)

دا چي زموږ ځینو، معاصرو، پوهانو او مورخینو هم اخوند درویزه د مغولو د دربار گوډاگی او مدافع بللی دی د تامل وړ خبره ده. هسي خو پیر روښان او روښانیانو هم د خپلو مخالفینو او حتی هغو کسانو چي د دوی د طریقي پیروان نه ول، چنداني لحاظ نه دی کړی؛ خو دي اختلاف او حملو زیاتره عقیدوي شکل درلود او چنداني سیاسي اساس یي نه درلود. د اسلام په تاریخ کي د عقایدو دغه راز سخت اختلافونه او د یوه بل تکفیرول ډېره اوږده سابقه لري. اخوند درویزه په دغه سلسله کي د پیر روښان او روښانیانو پر ضد دوه کتابونه ولیکل او داسي ښکاري چي ان د پښتو د تورو په جوړولو یي هم دعوه کړي ده. کنه نو په دومره تفصیل د پښتو د تورو معرفي کولو ته هیڅ اړتیا نه وه (هغه کتاب ص ص ۱۳۷-۳۸) البته حافظه یي لکه چي ډېره مرسته نه ورسره کوي او په خپل بل کتاب تذکرت الابرار والاشرار کي، چي د اخوند درویزه وروستی لیکنه گڼله سوې ده، د پیر روښان او ارزاني د پښتو او فارسي لیکنو او

شعرونو يادونه کوي. په داسي حال کي چي خيرالبيان کټ مټ په همدغو تورو، چي اخوند درويزه يي يادونه کوي، او د جوړولو افتخار يي ځانته اخلي، څه باندي پنځوس کاله پخوا ليکل سوی وو.
ارشاد الطالبين:
د مخزن او تذکرت الابرار و الاشرار په باب، په تېره بيا د ډيورنډ د کرښي پوري خواته، ډېري زياتي ليکني سوي دي؛ خو د ارشاد الطالبين په باره کي يا ليکني نه دي سوي يا لږترلږه ما نه دي ليدلي. د ارشادالطالبين د ليکل کېدلو کال څرګند نه دی؛ خو د کتاب په متن کي د حوالو څخه ښکاري چي دا ليکنه د هغه د ډېر پاخه عمر او ډېري زياتي مطالعي محصول ده. ما په ژوند کي د هيڅ اخوند د کتاب په متن کي دومره حوالي نه دي ليدلي. ځای پر ځای د داسي کتابونو له نومونو سره مخامخ کېږو چي له ډېرو سره يي زما په شمول د ډېرو زياتو لوستونکو غوږونه اشنا نه دي.
معرفته المذاهب، انيس الواعظين، تذکرت الاولياء، طوالع شموس د قاضي حميدالدين ناګوري، تفسير ابوالليث، مشارق الانوار، بوستان ابوالليث سمرقندي، نظام الموءمنين، معراج نامه، تعريف اللغات، شرح مشارق، فوزالنجات، کفايت الاسلام،انيس العاشقين، فتاوی سراجي، مفتاح الجنان، فتاوی غرايب، فتاوی افتخار، عمدته الاسلام، دستورالقضات، اجتناب الفقر، ترغيب الصلوات، عوارف المعارف، فتاوی نوادر، تفسير ملايعقوب کابلي، شرح مختصر علي رودباري، تحفته المذکورين، تحفته الاخبار، تحفه شامي، لباب الاخبار، تفسير منير، مکتوبات شيخ شرف الدين منيري، مثنوي جلال الدين رومي او ....
که څه هم چي اخوند درويزه په خپل کتاب تذکرت الابرار کي ارشاد الطالبين د شيخ الاسلام والمسلمين شيخ جلال تهانسيري اثر بولي( تذکرت الابرار والاشرار ص ۳۵) خو د خپل کتاب لپاره يي هم دغه نوم خوښ کړی دی. دا کتاب يي ښايي په داسي وخت کي ليکلی وي چي لا يي ښايي د شيخ جلال تهانسيري کتاب نه وو لوستی او لا يي ګټه نه وه ورڅخه اخيستي. په هر صورت، کله چي سړی د اخوند درويزه دومره زياتي مطالعي، دومره اوږده عمر او سفرونو او د کتاب په متن کي دومره زياتو غلطيو، اشتباهاتو او خُرافاتو ته ګوري نو حيران پاتېږي.
د مثال په ډول اخوند درويزه په دي نه دی خبر چي معاويه د حضرت رسول صلعم له وفات څخه تقريبا پنځوس کاله وروسته نور هم ژوندی وو او څه کم شل کاله يي خلافت وکړ. بلکه وايي چي د هغه د د وفات په احترام له اسمان څخه دونه ملايکي راکښته سوي او دومره ګرد او غبار يي جوړ کړ چي صحابه وو د کفارو د لښکر ګومان ورباندي وکړ؛ خو حضرت رسول صلعم ورته وويل چي دا فرښتي دي او د معاويه د درناوي لپاره راکښته سوی دي او علت يي دا دی چي معاويه په لمانځه کي د فاتحي له سوري څخه وروسته هر وخت سوره اخلاص ويله(ارشادالطالبين ص ۱۶۳)
سره له هغه چي اخوند درويزه پخپله لوی صوفی دی او د مخزن په کتاب کي د ډېرو لويو کراماتو دعوه کوي خو د حسين بن منصور الحلاج په څېر يوه مشهور صوفي، چي د انالحق ناره يي د صوفيانو، په تېره بيا وحدت الوجودي صوفيانو، افسانه سوه، په ژوند او حالاتو نه دی خبر. اخوند په خپل کتاب کي ليکي چي حسين بن منصور الحلاج په اتيا کلني کي د حق متعال په طلب ووت. د انالحق ناره يي پورته کړه؛ وروسته يي پنځوس کاله پنځوسو اقليمونو ته سفرونو وکړل او د هر اقليم څخه خلکو وشاړه. بالاخره د هارون الرشيد خليفه په وخت کي، چي امام يوسف يي قاضي و، بندي سو او ووژل سو. ويل کېږي چي يو لک اولياوو د هغه د قتل فتوا ورکړه(هغه کتاب ص ص ۲۷۱-۷۲)
د اخوند په حساب بايد، حسين بن منصور ۱۳۰ کاله ژوند کړی وي. په داسي حال کي چي د هغه ټول ژوند پنځه شپېته کاله و. په ۲۴۴ هجري کي زېږېدلی او په ۳۰۹ هجري کي اعدام سوی دی. دا وخت د هارون الرشيد له وفات څخه څه باندي ۱۱۰ کاله تېر سوي ول او خليفه المقتدر بالله د بغداد پر تخت ناست وو.
اخوند د حسين بن منصور په باب نوري داسي مبالغي کوي چي دلته يي راوړل تفصيل زياتوي. وروسته ليکي چي د اعدام کېدلو څخه مخکي بايزيد بسطامي ورته راغی او ده ته يي سجده وکړه. حسين بن منصور ورته وويل چي پرته له خدايه بل چاته سجده کفر ده، څرنګه دي ماته سجده وکړه. بايزيد ورته وويل چي تاته مي سجده نه ده کړې بلکه ته هينداره وې او په تا کي مي حق«خدای تعالی» وليدی. (هغه کتاب ص ۲۷۳)
بايزيد بسطامي د ډېرو مشهورو وجودي صوفيانو څخه شمېرل کېږي او د شيخ فريدالدين عطار په تذکرت الاولياء کي يي راز راز کيسي راغلی دي خو انسان ته د سجدې کولو ذکر يي په هيڅ کتاب کي نسته او پخپله اخوند هم نه وايي چي دا روايت يي له کومه کړی دی؛ يوازي دونه وايي چي کتاب راوړي دي(مسطور است) تر دې خبري چي را تېر سو نو د بايزيد بسطامي د ژوند د حالاتو او وفات په باب ډېر زيات اختلاف موجود دی. د هغه د وفات کلونه له ۲۳۴ څخه تر ۲۶۱ پوري ګڼل سوي دي. که يي لومړی سنه ومنو نو دا به د حسين بن منصور له زېږېدلو څخه

لس کاله مخکي وي او که يي دوهمه سنه قبوله کړو نو په دي وخت کي به حسين بن منصور ایله اووه لس کلن وي او د بايزيد بسطامي په ځير يو شيخ به هغه ته څرنګه سجده کوي؟
اخوند درويزه د بوعلي سينا په باره کي تر يوې خُرافي کيسي وروسته وايی چې هغه کافر سو او ټول علم يې د منطق او جادو په برخه کي وکړ. د بلخ پاچا او د هغه ټول رعيت يې ګمراه کړل. دا خبر شهاب الدين سُهروردي ته ورسېدی او بلخ ته روان سو. کله چې ابن سينا د شيخ سره مخامخ سو نو ټول علوم ورڅخه هېر سول او د بلخ پاچا او خلک د شيخ شهاب الدين په نصيحت بيرته سمي لاري ته راغلل ( هغه کتاب ص ۳۷۶)
لومړی خو د ابن سينا په وخت کي په بلخ کي مستقله پاچهي نه وه. بيا نو شيخ شهاب الدين سهروردي د ابن سينا له وفات څخه څه باندي ۱۱۰ کاله وروسته دنيا ته راغلی دی او له هغه سره يي د ملاقات کولو وخت نه دی پيدا کړی.
ابن سينا په کال ۹۸۰ ميلادي کي زيږېدلی او په کال ۱۰۳۷ کي وفات سوی دی او شهاب الدين سُهروردي په کال ۱۱۴۵ ميلادي زيږېدلی او ۱۲۳۴ کي وفات سوی دی. داچې شهاب الدين سهروردي په ژوند کي بلخ ته تللی نه دی هغه خو لا بله خبره ده.

نوربيا